په راس کي يې ۲۳ کسيزه ستره شورې ده او بيادغو ټو لو په مجمو ع کي اووه کسيزه قيادي شورئ دنظار دهيئات په نوم موجوده ده چي دجهادي فعاليتو نو عمو مي اداره ددوي په واك کي ده .جهادي شورې گاني په لاندې ډول دي :-

## ۱- دخوست دجنوبي محاذ شورئ :

چي دخوست دمرکزي شورئ په نامه هم يادېږي ، دغه جهادي شورئ دخوست په جنو بي استقامت فعاليت کوي اودغه قوماندانان دخپلو تنظيمو نو نمايندگي کوي .

دحزب اسلامي مولوي خالص : الحاج مولوي جلال الدين (حقاني) .

دحزب اسلامي حکمتيار : انجينر فيض محمد جهادوال .

دملي اسلامي محاذ : پير نيك ولي .

داسلامي اتحاد : مو لوي پير محمد رحماني .

دحرکت انقلاب اسلامي : حاجي مالي خان .

داسلامي جمعيت : تو رن امان الله .

دنجات دملي جبهي : پير نور احمد شاه .

## ۲- دخرڅند جهادي شورئ :

دمجاهدينو دغه شورئ دخوست په جنو ب ختيځ استقامت مو قعيت لري او دغه قو ماندانان دخپلو تنظيمو نو نمايندگي کوي .

دملي اسلامي محاذ : حميدالله جان .

داسلامي اتحاد : تورن اسلام گل .(۱)

دحزب اسلامي حکمتيار : مولوي فضل الر حمن .

دحزب اسلامي مولوي خالص : ملامير داد.

دحرکت انقلاب اسلامي : مو لوي مياجان .

دنجات دملي جبهي : حاجي فاروقي .

## ۳- دکو چي قامو نو شورئ :

دمجاهدينو دغه شورئ دخوست په ختيځ استقامت فعاليت لري او دغه قو ماندانان دځلو جهادي تنظيمو نو نمايندگي کوي.

داسلامي اتحاد: حاجي محمد افضل .

دملي اسلامي محاذ : حاجي وزير سليمانزي او حاجي نياز محمد (۲)

دنجات دملي جبهي : حاجي شيرين .

---

(۱) دخوست دفتحي په عملياتو کي ددي شورئ دمجاهدينو قو مانده دده په غاړه وه .

(۲) داچي په دي شوري کي دملي اسلامي محاذ مجاهدين زيات دي نو ځکه يي دوه تنه نمايند گي کوي .

دحزب اسلامي حکمتیار : سر دار خان .

دحزب اسلامي مو لوي خالص : خاجي ګلاب .

دحر کت انقلاب اسلامي : ملانسیم خان .

## ٤- دغلنګ دمجاهدینو شورئ :-

دمجاهدینو دغه شوري دخوست په شمالي استقامت موقعیت لري اودغه قوماندانان دخپلو جهادي تنظیمو نو نماینده-ګي کوي :-

دحر کت انقلاب اسلامي :- حاجي تو تاخیل .

دجمعیت اسلامي :- میرزاجان .

دحزب اسلامي حکمتیار : حضرت محمد .

دحزب اسلامي مولوي خالص : مو لوي قادر جان (۱)

داسلامي اتحاد : خان محمد .

دملي اسلامي محاذ : عید ګل .

دنجات دملي جبهي : محمد ایوب خان

---

(۱) دغه قو ماندان دمته سنګر په شورئ کي هم دخپل تنظیم نمایندګي کوي .

## ٥- دخوست دلویدځ محاذ شوري !

ددي جهادي شوري مجاهدين هم دخوست په لويديځ استقامت مو قعيت لري اودغه جهادي شورۍ پر خوست باندي دمجاهدينو له عملياتو نخه دمخه جوړه شوي اودغه قو ماندانان دخپلو جهادي تنظيمو نو نمايند گي کوي :

دملي اسلامي محاذ : حاجي عبدالرحمن .

دحزب اسلامي مولوي خالص : مو لوي عالف گل .

دحرب اسلامي حکمتيار : حاجي شيرين دل .

داسلامي اتحاد : حاجي اريم خان .

دحر کت انقلاب اسلامي : زرمي خان

دنجات دملي جبهي : مير نازك خان

دجمعيت اسلامي : حاجي شير

## ٦- دخوست دسروبي محاذ شورۍ :-

دمجاهدينو دغه جهادي شوري دخوست په لويدځ استقامت موقعيت لري اودغه قوماندانان دخپلو تنظيمو نو نمايند گي کوي:

دحزب اسلامي مولوي خالص : مو لوي حنيف شاه .

دملي اسلامي محا ذ:حاجي خير محمد او مير بداد

دحر کت انقلاب اسلامي : مير شاديخان .

داسلامي اتحاد : شيرين ولي

دنجات دملي جبهي : غفور جان .

داسلامي جمعيت : ضابط فقير .

## ۷- دمته سنگر دمجاهدينو شورئ :

ددي شوري مجاهدين دخوست دلويي و لسوالئ مر بوط دځاځي ميدان دو لسوالئ په شمالي محاذ كي فعاليت كوي او دغه قو ماندانان دخپلو جهادي تنظيمو نو نمايندگي كوي .

دحر كت انقلاب اسلامي : خليفه عبدالو احد نقشبندي او خليفه اميرخان .

دملي اسلامي محاذ : گلاب خان ، سليمانزي او عبدالولي .

دحزب اسلامي حكمتيار : قيس ، معلم تاج محمد ، حاجي سيد نوراو ډاكتر خانگل .

دحزب اسلامي مولوي خالص : مو لوي قادرخان .

داسلامي اتحاد : شهيد قاري فضل هادي (۱) او ضابط نو- شيروان مقبل .

دنجات دملي جبهي : لعل محمد ، محمد قاسم ، فاروق جان او حاجي پرگل .

---

(۱) شهيد قاري فضل هادي دځاځي ميدان له فتحي وروسته دحمل په ۱۳ نيټه دماين په چاودنه كي شهيد شو .

دجمعیت اسلامي : خیر ګل .

یادونه: په دي جهادي شوري کي له دي امله دهر تنظیم څو

تنه قوماندانان نمایندګي کوي چي دبیلو بیلو قامو نو مجاهدین

يي تر قوماندي لاند ي کار کوي ، نو دضرو رت له مخي دهر

تنظیم څو څو تنه قوماندانان په شوري کي غړیتو ب لري .

۸- دلکڼو شوري :

په ورو ستیو و ختو نو کي دخوست دجنوب ختیځ

استقامت مجاهدینو هم یو ه ځانګړي شوري جوړه کړه او دټو لو

جهاد ي تنظیمو نو په ګډون يي خپلو جهادي هلو ځلو ته دوام

ورکړ .

## داربکي تنظیم :

دتاریخ په اوږدو کي دپکتیاولایت په ټولو سیمو کي دخپلو سیمو او، ورشوګانو دامنیت او نظم ساتلو په غرض داربکي په نامه یو مو ثر او اغیز من قو مي تنظیم موجوددي ، دغه تنظیم د(میر) په نامه یو مشر لري او دضرو رت په اندازه امنیتي افراد یي تر قو ماندي لاندي کار کوي ، ددغه تنظیم مشر دقام دمشرانو ، علماؤ او سپین ږیرو په امر هر هغه وظیفه دخپلو افرادو په ذریعه سر ته رسوي چي دقام له خوا ورسپارل کیږي ، دغه تنظیم کله ډیر فعال او کله بیا چندان فعالیت نه لري ، هغه په دي معنیٰ چي دعاجل ضرو رت په و خت کي یي وظیفه درندیږي او دفعالیت ساحه یي پراخوالي پیداکوي ، ددي تنظیم دافرادو شمیر دو خت دغو ښتني مطابق زیاتیږي او کمیږي ، که چیر ي ضرورت ولیدل شي نو شمیر یي تر دریو او څلورو سوو پوري رسیږي ، خو معمو لاً یي شمیر دپنځو سو او شپیتو تنو په شاو خواکي تثبیت دي ، دغه تنظیم و ظیفه لري چي پخپله سیمه کي امنیت و ساتي ، پر غر یبانو باندي دزور او ظم مخه و نیسي او هم دخپلي سیمي سرحدي پولي دګاونډیانو له تعرض او ګواښ خخه خو ندي وساتي ، کله چي په هغه قو م کي دچا له خواپه ناحقه کو م څو ك ووژل شي ،

یایي ناموس ته په سپکه ستر گه و گتل شي او یایي هم شتمني و لو ټل شي نو ددغه تنظیم افراد دخپل (میر) په امر پر مجرم باندي قامي فیصله دتاکل شوي سزاسره تطبیقوي ۰

او س چي دخوست لویه ولسوالي او ددې ولسوالي مر بوطي سیمي مجاهدینو فتحه کړي دي ، نو په دغو سیمو کي دامنیت دساتلو او نظم راو ستلو په غر ض (۳۵۰) تنه ټاکل شو ي او داربکیو په بڼه په سیمه کي دامنیت او نظم ځا رنه کوي او ددي صلاحیت لري چي خپله ورسپارل شوي وظیفه په هماغه شکل سر ته ورسوي لکه څنگه چي یې ایجاب کیږي ، نو په دي تو-گه او س په خوست او شاو خوا سیمو کي دامنیت دگډودي دخطر احساس له منځه تللي او دغه (۳۵۰) تنه پر ټو لو حالاتو مسلط دي ، پاتي دي نه و ي چي دار بکي دتنظیم، (میر) او افراد کوم معاش او اجو ره نه لري بلکي دخدایي خدمتگارانو په ډول دخپل قام او خپلو خلکو خدمت کوي او پر چاباندي احسان هم نه باروي (۱)

---

(۱) له دي امله چي په افغانستان کي مر کزي حکو متونو ځیني و خت ددي توان له لاسه ورکړي دي چي په لیري پرتو سیمو کي امنیت تا مین کړي ، نو دپکتیاولایت اوسیدو نکي ددغه ستر ضرورت داحساس له مخي ددغه شان یو تنظیم جوړولو ته اړ شوي دي .

# پر خوست دعملیاتو پیل او دفتحي نیټه

پر خوست باندي د ۱۳٦۹ هـ ش کال دحوت په ۲۳ نیټه دخوست دجهادي شوراګانو دقهرمانو مجاهدینو دمنظم او هماهنګ پلان له مخي له ټولو استقامتو نو څخه عملیات پیل شول او ددرندو وسلو په ذریعه ددښمن پو ځي قطعات او نظامي مرکزونه تر دوامدار اورلاند ونیول شول . په دي دشمن پر زوو- نکو عملیا تو کي دټو لو جهادي تنظیمو نو جهادي قو تو نو برخه درلوده اودیوي واحدي ستراتیژۍ له مخي یي دجهادي او قیادي شورۍ تر قو ماندي لاندي جنګي عملیات پر مخ بیول .

ددغو دښمن پر زوو نکو عملیاتو په پیل کي دمجاهدینو له خواټو لو هغو پو ځیانو ، منصبدارانو ، ملیشه یانو او افرادو ته چي دکابل دکمو نیست رژیم دبقا لپاره په سنګرو نو کي پراته وو عمو مي بخښنه اعلان شوه او په دي تو ګه تري و غو- ښتل شول چي له مجاهدینو سر دیو ځاي کیدو په صورت کي خپل سر او مال له حتمي خطر څخه وژغوري ، ددغو میړ نیو عملیاتو له پیل سر ه جوخت دخوست دهوایي ډګر د رادار

سیستم او درادیو ستیشن له منځه یوورل شو او مجاهدینو خپل پر مختګ ته دوام ور کړ.

دحو ت په ۲٤ نیټه دپروژي تر خنګ دوسلي ډیپو اور واخیست ، دغلنګ دشوري مجاهدینو دکمکي مزغوره ارتفاعات ونیول اودخرډند دشوري مجاهدینو دکو کرك په لور خپل پر مختګ ته دوام ورکړ .

دحوت په ۲۵ نیټه دکو چي قامو نو دشوري مجاهدینو دملیزیو او میر خو نسکي دپو ستو په نیو لو سره دخوست دفاعي کرېماته کړه او په دي تو ګه یي ددښمن په دفاعي خط کي شق اجراکړ ، همدارنګه په همدي نیټه دسرو بي مخاذ مجاهدینو دخپلو بریدونو په بهیر کي دعیدګل پو سته ، دکو-تاخ پو سته ، دپیر سا ګل پو سته دولسوال پو سته او دحاجي میر شلي پو سته فتحه کړي ، دهمدي ورخي ماسپسین مهال ددښمن دوه هلیکو پتر الو تکي راو غورځول شوي ، دخاد دودانيېاو دخوست دفرقي یوه برخه دمجاهدینو ددرندو وزو په نیتجه کي ویجاړه شوه اود اتلو مجاهدینو دپر له پسي وزو له امله دتیلو زیر مي او ر و اخیست .

دحوت په شپږو یشتمه ۲٦ نیټه مجاهدینو دخپلو پو لادي ګوزارونو په بهیر کي ددښمن یو زیات شمیر پو ستي او نظامي

بسم الله الرحمن الرحيم

## تقريظ

دجهادي مصالحو دتقويي اوسياسي ګټو په منظور ددعوت اوارشاد دوزارت له پلوه محترم غروال صاحب دافغانستان ديومهم سرحدي اودفاعي قوي سنګر دخوست لويي ولسوالۍ دفتحي په ارتباط خه مهم مطالب غوښتي ؤخوشبختانه دمجاهد ورور غروال صاحب دخپل ادبي هنر اوبي ساري نيک سلوک په رڼا کښي په پوره عدل انصاف اودقت اوامانت کاراخستي اوهر ارخيزه معلومات يي يو ځاي کړي اوګرانو لوستونکوته يي ددوي دغوښتنو په مقتضي ترتيب کړي دي اوپه عين حال کي زما دنظر موافق نه بلکه دقدراوتقديروړګڼل کيږي .

ومن الله التوفيق

مولوي فياض

مر کزونه فتحه کړل چي دمثال په تو گه دلکي سر پو سته ، دبير غ پو سته ، جگه پو سته ، دقو ماندان پو سته، د شلکا پوسته ، لويه قرار گاه او دټانگ پو سته يادولاي شو . دحو ت په ۲۷ نيټه مجاهدينو و کړاي شول چي دفار م باغ دقرارگاه په کډون دپاشين تاپو گان فتحه کړي او دښمن ته دسر او مال زښت ډير تاوانو نه ورسوي . دمجاهدينو دمير نيو غو رځنتگو نو په او ومه ورځ دحوت په ۲۹ نيټه مجاهدينو دباك علاقداري ، ديعقوبيو علاقداري، دويسار پوسته او دکو کرك دلوړ سر پو سته چي زښت ډير ستراتيژيکي اهميت يي درلود فتحه او په دي تو گه يي دخوست او ځاځي ميدان تر منځ دار تباط مزي وشلول ، دعملياتو په اتمه ورخ د ۱۳۷۰ هـ ش کال دحمل په لو-مړي نيټه مجاهدينو دخوست دلښکر کو ټ په ختيځ استقامت دغټه پوله ، غو نډي ، گو رگوري او جو گي په نامه ددښمن يو شمير پو ستي فتحه کړي او خپل پر مختگ ته يي دوام ور کړ. دختيځ ، جنوب او شمال له خوا دمجاهدينو عمليات په بري سره مخ په وړاندي روان وو، خو دلويديځ استقامت مجاهدينو چندان پر مخ تگ و نه کړاي شو او ددښمن له خوايي د سړ بن دليسي په حدودوکي د پر مختگ مخه ونيول شوه ، په دي تر-تيب له لويديځ استقامت څخه پرته په نورو استقامتو نو درژيم

ټولي پو ستي او پو ځي قرار گاوي مجاهدينو فتحه کړي او ددشمن ماتي خوړلي قو تو نه له سختي وار خطايي سره مخامخ شول.

دحمل په دريمه نيټه چي دعملياتو لسمه شپه وه مجاهدينو دکمکي توري غاړي په استقامت دسور خاني په سيمه کي ددښمن يو شمير پو ستي او پو ځي قرار گاه فتحه او په همدي نيټه مجاهدينو دشيخ امير علاقداري او په دي علاقداري کي ددښمن پوځي قرار گاه له منځه يووړه او دگگرسر دپو ستي په گډون يي ددښمن پنځه پو ستي ونيوي . دحمل په ٤ نيټه مجاهدينو ددښمن يوه څلور ماشينه پو ځي الو تکه راوغورځوله ، په همدي ورځ رژيم دخپلو ماتي خوړلو پو ځيانو لپاره دپر-اشوټ په ذريعه وسله او مهمات راو غورځول ، خو ټو ل مواد دمجاهدينو تر کنترول لاندي سميه کي پر يو تل او په دي تو-گه مجاهدينو داو بوس تو پ ، هاوان او ټانک تو پ ټو لي (٥٠٠) گو لۍ تر لاسه کړي .

• مجاهدينو دزاړه هوايي ډگر دنيولو په تعقيب داوخت نوي هوايي ډگرهم پخپل کنترول کي راو ستلي و او ددښمن د الو-تکو دکيناستو امکانات يي له منځه وړي وو ځکه نو دښمن مجبورؤ دخپلو محاصره شو و قو تو نو داکمال لپاره له پراشوټ څخه کار واخلي .

دمجاهدینو ددغو عملیاتو په جریان کي یو ځل
بیادمجاهدینو عمو مي بخشنه اعلان شوه اوولسي خلکو ته
دجنګ له ډګر څخه دو تلو سپارښتنه وشوه چي په دي تو ګه
دحمل په څلورمه نیټه ۳۰۰ کورنۍ له خوست څخه وو تلي او
دمجاهدینو تر کنترول لاندي مصئونو سیمو ته یي ځانو نه
ورسول ، دحمل په پنځمه نیټه مجاهدینو یوه الو تکه راو-
غورځوله او په شمال لویدیځ استقامت یي دسورۍ غونډۍ ،لیو-
نۍ کندي ، سیکي ، ټنډه او سټو غو نډۍ پو ستي او یوه پو-
خي قرار ګاه یو په بله پسي ونیوي او په همدي نیټه دخوست
دخارندوټي قو ماندان جنر ال غو نډي له ٤٥ تنو افرادوسره ووژل
شو او ددي قو ماندانۍ ٦٠ تنه افراد له خپلو وسلو سره
مجاهدینو ته تسلیم شول ، دحمل په نهمه نیټه مجاهدینو یو
هلیکو پتراو یوه بارووړونکي الو تکه راو غورځوله او نوي هوائي
ډګر له ټو لو امکاناتو سره په غو څه تو ګه دمجاهدینو لاس ته
ورغي . دحمل په لسمه نیټه دخوسنت دلښکر کوټ په شاو
خواکي ټول امنیتي کمربندونه او پو ځي پو ستي له منځه
یوړل شوي او ددښمن په پو ځي قطعاتو او نظامي مر کزو نو
کي ماتي ګډه شوه او دحمل په ۱۱ نیټه دمتو ن بابا په غونډۍ
کي ددافع هوا : (۱۰۵) قطعه ، دمخابري د (۱۰٤) قطعي

او داستحکام دکنډك په فتحه کو لو سره دخوست لښکر کو ټ په غو ځه تو گه داسلام دسپاهیانو لاس ته ورغي او په دي سیمه کمي دکمو بیست رژیم ځالي دتل له پاره له منځه یوړل شوي . دفر قي قو ماندان جنرال گل آقادمجاهدینو له خوا ژو ندي ونیول شو او درژیم د (۲۰۰۰) تنو په شاو خواکي منصبداران ، عسکراو ملیشه یان مجاهدینو ته تسلیم شول .

دخوست تر فتحي دمخه دنجیب مر ستیال او دمر کزي کمیټي منشي نظر محمداو ددفاع دوزارت مرستیال دگر جنرال سوله مل له یو لوړ رتبه هیئات سره چي اکثر غړي یي جنرالان او و زیران وو دخوست دپو ځیانو دمو رال دلوړ ساتلو لپاره راغلي وو، خو دجنگ په پاي کي نظر محمد، تورن جنرال غلام فاروق ، دخاد رئیس برید جنرال رحمت الله او دخوست والي سعادت گل اهنگر له یو شمیر نو رو لوړ رتبه کسانو سره لادرکه شول اماځو ورځي وروسته معلومه شوه چي کابل ته رسیدلي دي .

دخوست له فتحي وروسته مجاهدینو له تسلیم شویو او نیول شویو عسکرو او منصبدارانو سره داسلام داصو لو له مخي انساني چال چلند و کړ ، هغوي اودهغوي کورنیو یي ځوندي ځایو نو ته ولیږدول ، دجگړي پنځه سوه زخمیان چي دخوست

په رو غتون کي بستر وو دتداوي لپار ه دمجاهدينو رو غتو نو-
نو ته انتقال کړل او تر تداوي لاندي يې ونيول . دمجاهدينو
ساحي ته دراغلو کو رنيو دورځنيو مشکلاتو درفع کو لو په غر-
ض يې هغو ي ته خوراکي مواد او نور ضرو ريات برابر کړل
دخوست دامنيت دساتلو لپاره لازم تدابير ونيول شول او دجهادي
شوراګانو په سطحه ۳۵۰ تنه مجاهدين مؤ ظف شول چي
دخلکو دبي ځايه لاس وهني مخه و نيسي او په سيمه کي
امنيت وساتي درنده وسله له پخواني فيصلي سره سمه
دمجاهدينو دجهادي شوراګانو دفيصلي له مخي معلو مه شوه او
دمجاهدينو دراتلونکو عملياتو لپاره په لازمو ځايو نو کي ځاي
په ځاي کړاي شوه .

## دخوست په جګړه کي دمجاهدينو تلفات :

که څه هم دجګړي دپيل په لو مړي سرکي ګو مان کيده
چي دجګړي په جريان کي به مجاهدينو ته زښت ډير تلفات
ورسيږي ځکه ددښمن دهوايي بمباريو او سکډ تو غنديو ترڅنګ
ددرندي او سپکي وسلي بمباري او ګو له باري دو مره زياته وه
چي دچاخبره چاسرنه شو پورته کو لاي ، خو دمهر بان خداي
په مرسته دمجاهدينو دشهيدانو شمير ۱۵۰ تنو ته رسيږي
او دزخميانو شمير يې له دي څخه هم کم دي .

## دخوست په جګړه کې دکابل دررژیم دتلفاتو اندازه :

دخوست په دښمن پرزوونکي جګړه کي دماتي خوړلي دښمن دسر او مال دتلفاتو دقیقه احصائیه لاس ته نه ده راغلي، خو دوژل شویو عسکرو ، منصبدارانو او ملیشه یانو شمیریي له پنځه سوو کسانو څخه تجاوز کوي ، همدارنګه په سوونو کسان زخمیان شوي او لږترلږه دوه زره تنه عسکر ، منصبداران او ملیشه یان مجاهدینو ژوندي نیولي دي چي دګلم جم دملیشي تقریباً دري سوه تنه هم پکي شامل دي . مجاهدینو ددي بریالیو عملیاتو په پاکي ډول ډول سپکه او درنده وسله، زغره وال ټانکو نه ، هلیکو پترونه، عسکري لاري او نقلیه وسایط تر لاسه کړل چي بر سیرنه احصائیه یي په دي توګه وړاندي کیږي .

شل زغره وال ټانکو نه چي دوه عرادي یې تخریب او نور روغ رمټ دي ، دوه هلیکو پترونه ، پنځه الو تکي چي جزو ي عوارض لري ، (۶۰۰) میله ډول ډول توپو نه ، څه ناڅه (۶۰۰۰۰) میله ډول ډول سپکه وسله ، په شلګو نو میله شلکا، زیګو یك ، داشکي او څلور میله ماشینداري ، دسلګو-نو زرو په شمیر ډول ډول کار توس ، په سلګو نو ټنه ډول ډول خوراکي مواد ، ډول ډول مخابراتي او په سلګو نو ملیو نه نغدي روپیه.



همدارنگه دخوست پر لښکر کو ټ دقهرمانو مجاهدینو دبریالیو عملیاتو له پیل کیدوسره جوخت دځاځي میدان دشمالي محاذ دشورۍ سر ښندو نکو مجاهدینو هم پر ځاځي- میدان باندي خپل پو لادي گزارو نه لاپو لادي او گړ ندي کړل او په و لسوالۍ کي کفري ځاي يي له سختي وار خطايۍ سره مخامخ کړي .

د ۱۳۷۰ هـ ش کال دوري په یو ولسمه نیټه چي دخوست لښکر کو ټ له ټو لو امکاناتو سره دحق دلاري غازیانو ته تسلیم شو،نو په تعقیب يي دوري په ۱۲ نیټه دځاځي میدان په و لسوالۍ کي میشتو پو ځي قطعاتو او ملیشه یانو خپل باطل سنگرو نه خو شي کړل او په تیښته يي ځانو نه خوندي ځایونو ته ورسول او په دي تو گه دځاځي میدان ولسوالي هم له ټو لو امکاناتو او پو ځي سازو سامان سره دمجاهدینو لاس ته ورغله چي په دي تر تیب دپکتیا ولایت له مرکز گردیزاو دسیدکرم له ولسوالۍ پر ته نور ټو ل ولایت له کفري قو نو نو څخه آزاد او داسلام تل رپانده بیرغ پکي ورپول شو .

دخوست او ځاځي میدان له فتحي وروسته ماتي خوړلي دښمن ملي ماتم اعلان کړ او دکابل درژیم مشر نجیب په دي اړه خپله راډیو يي ویناکي داسي وویل : « نن سهار له خوست سره



زمالار تباط وشليدو او زه په دي رابطه ملي ماتم اعلانوم» . او
په دي تو گه يي يو ځل بيا خپله ماتي خوړلي ځيره نهيوالو ته
څر گنده شوه.

دخوست او ځاځي ميدان دفتحي په تعقيب دښمن خپلو
بمباريو او دسکډ تو غنديو ويشتلو ته دوام ورکړ، دخوست دښار
زياتي ودانۍ ددغو وحشيانه بمباريو او سکډتو غنديو په ذريعه
په کنډوالو بدلي شوي او ملکي کسانو ته يي دسر او مال تاوان
ور ساوه .

## يادونه :

دافغانستان په ملي اسلامي محاذ پوري مر بو ط
دصبريو ، دځدرانو دزني خيلو او مقبلو مجاهدينو دځينو عو-
املو له امله په جهادي شوراگانو کي برخه نه در لوده او په
ځانگړي تو گه يي جهادي هلو ځلو ته دوام ور کړ چي البته
ددغو مجاهدينو له جهادي مو ثريت څخه ستر گي نه شي
پټيدلاي ، همدارنگه په لو يديځ محاذ کي دحزب اسلامي
مولوي خالص دتنظيم مر بو ط دشهيد مطيع الله دجبهي
مجاهدينو هم پرته له دي چي په کو مه جهادي شوري کي گډون
ولري په مستقله تو گه ددښمن پر پو ځي تاسيساتو باندي خپلو
بريدو نوته دوام ورکړ ، خو داچي ددښمن له خوا دعملياتو په

پیل کي دسر تلفات ورواړول شول نو چندان پر مختګ یې و نه کړای شو ، مګر سنګر یي خو شي نه کړ او په پر له پسي تو ګه یي ددښمن پو ځي قطعات او نظامي مر کزو نه تر خپلو ډزو لاندې وساتل .

همدارنګه دخوست دعملیاتو په لړ کي دافغانستان دملي اسلامي محاذ دبريد جنرال امير محمد په مشرۍ دعبدالرحمن بن عو ف دغو نډ مجاهدين ، دبريد جنرال شاه و لي په مشرۍ دسلطان محمود غزنوي دغو نډ مجاهدين اودتو پچي دقطعاتو غو نډ دخرډنډ دشورۍ او کو چيانو دشو رۍ په تقويه دجګړې ډګر ته ورسيدل چي دخوست تر فتحي پوري يې دخپلو درندو وسلو په واسطه ددښمن دسنګرو نو په ماتو لو کي دسيمي دقهر-مانو مجاهدينو له پر مختګ سره مرسته و کړه چي البته ددوي

دښمن پرزوونکي ګزارونه دستايني وړدي .

دغه ذکر شو ي جهادي قو تو نه اصلاً دننګر هار په ولايت کي ددښمن پر خلاف خپلو جهادي هلو ځلو ته دوام ورکوي ، خو په خوست کي دخپلو مجاهدو وروڼو دملاتړ په غر ض يي په عاجله تو ګه هغو سنګرو نو ته ځانو نه ورسول .

# دخوست دفتحي په ارړه دمجاهدو شاعرانو تاثرات

لکه څنگه چي زمونږ دوسله وال سنگر قهرمان مجاهدين پخپل بي دينه او ملحد دښمن مرگو ني گزارونه کوي او دهغوي طاغو تي ځالي يوه په بله پسي له منځه وړي دغه شان زمونږ دفر هنگي سنگر اتل مجاهدين ( مجاهدشاعران او ليکو الان ) هم ارام نه دي ناست بلکي وخت په وخت يي دخپل ماتي خوړلي دښمن زهر جن تبليغات خنثيٰ کړي او دخپلو اتلو غازيانو ميړانه او اتلوالي يي دتاريخ پاڼو ته سپارلي ده ، چي دادي دپکيتاولايت دخوست دلښکر کو ټ دفتحي په ارړه زمونږ دفر هنگي سنگر ددغو مجاهدينو ژور تاثرات او وياړلي تراني دخپلو درنو لو ستو نکو مخي ته ړدو.

بسم الله الرحمن الرحیم

# دخوست فتحه

## دسرخبري

په اسلامي افغانستان کي دروسانوپه ملاتړ دثور له خونړۍ کمونسيتي کودتاڅخه وروسته چي په ټول هيواد کي جهادي هلي ځلي پيل اوپه پرله پسي تو که يي په برمي سره دوام و کړ، نو کمو نستي عمالو دافغانستان ځيني مهم او سوق الجيشي ښارونه چي ددوي له پاره يي سترا تيژيکي اهميت در لود زيات تقويه کړل ، تر څو په دي توګه وکړاي شي دخپلي نه پائيدونکي واکمنۍ دراپرزيدومخه و نيولاي شي .

دپکتياولايت دخوست لښکر کوټ هم دهغو ښارونو له جملي څخه دي چي دثور دکودتاله لومړيو شپو ورځو څخه دکمو نستي عمالو دو فادارو غړيو ددير ښت او مهم سوق الجيشي ښار په تو که دخلق او پر چم دبي دينه اوهيواد پلورونکي ډلګۍ لپاره دزيات اهميت وړو، نو له دي امله يي ددغه ښار دزياتي نظامي تقويي او پياوړتيالپاره خپله زياته پاملر نه راوګر ځوله.

# دخوست فاتحینوته!

«وفایار»

اي دلوي خوست فاتحـــــینو!
ننګیالومجاهدینـــــــــو!

دجهادتاریخ مولــــیك کړو
په ښایسته کرښوزریـــــنو

ستربري موپــــه لاس راوړو
له بي ننـــګوملحـــدینـــو

دسرونـــوپه قیـــمت مـــو
وطن ومینځه پـــه وینـــو

***************

آفرین موپـــه همــــــت شه
آفـرین موپــــــه غیـــرت شه

آفرین ستاسوپه ننـــګ شـــه
آفریـــن مـــوپه قوت شـــه

سل شاباس ستاســوپه تــوره
په رښتوني کلك وحـــدت شه

دالله پاك رحمتــــــــونه
نازل ستاپـــه محبـــت شـــه

همیشه ستاسو په برخه
دالله تعالی نصرت شه

*********

بیا دننگ شملي شوي پورته
دسرکښۀ آسمان لورته
پتنګان دعشق ګواښیږي
بیادپاکي میني اورته
هرتهترپولادي سپردي
په ډګرولاړهرزورته
بوروي په ځانومیندي
ځي ویاړمن جنتي کورته

*******************

په رښتیاقهرمانان یيء
داسلام تکړه سپاهیان یيء
تاسوښکرددښمن مات کړل
دمورچل پهلوانان یيء
سرښندونکوننګیالیو
هو! په حقه لارروان یيء
مبارک موشه دافتحي
په رښتیاددین غازیان یيء

اي تورزنو ، ننگـــياليو!

اي پتمـــنومـــيړنيـــو!

په تيره توره موغـــوږ کړ

دکمون سر، توريالـيـــو!

اي په هرډگرکــــــي برو!

پرمخ تللــــيوبرياليــو!

دوحدت لاره کــړيٌ تيــنگه

دمحمـــود لاري ، لارويـو!

****************

مات کړيٌ بيادوخت بتـــان ټول

نکړيٌ هيرخـپل شهـــيدان ټول

هو! له خپل وطـن نه ورك کړيٌ

سره خلقيان اوپرچميـــان ټول

داکبرغازي ياد، يادکــــــړيٌ

چي پري نه ږديٌ دښمـــنان ټول

هم احمد باباخوشحـــــال شي

ښادشي کونډې ، يتـيمان ټول

پرگـــــني اوولســونه

دهیواد تمام قــومـــونه

دبري پـــه انتـــظـاردي

دویرجنوغمـــــجن زړونه

دوحدت رسيږ پري نــه زدئ

سره ورکړئ کلـــك لاسونه

ستاسپرلي ته لاري خــاري

ریــژیدلي تــمول گلــونه

**************

پس له خوســت کابــل میدان

هم گــردیز،لــوگر،بــغلان

کندهار، هلمـــند، هــرات او

سمنگان ، غورات ، پــروان

هم فاریاب ، قندوز، جوزجان

کاپیـــسا ، مــزار، بغلان

**************

دغه تمول شـــریك وطن دي

دخوزي میني گلــشن دي

دکمون ستــــم ځپــلي

هروگړي موغمـــجن دي

دغازیانوگـــلرتاتهوبي

زمونږپلار، نیکومیهن دي

همیشـــه شرمـــنده تللي

تیتي سترګي هردښمن دي

*****************

لوي غونډونه ، کـــنډکونه

شول تسلیم دخوست پوزونه

دغازیانوپسیـوته تیتي شول

جنرالانوغـــټ ســـرونه

الوتکي شوي نســـکوري

غنیمت شـــوي ټانکـــونه

په سوونوپه زرګـــونـــو

نیول شوي غټ تـــوپونه

***************

دنجیب په کورمـــاتم دي

بیاغمجن روسـي عالم دي

لتهوي دتیســـتي لاري

هرخادوال اخته په غم دي

## ۳|۵

دورورې لاسونه ورکـــړئ

زړه دشپې چوي وخت کم دي

لراوبرمجـــاهدينـــو!

کاميـــابې ته يوقـــدم دي

*****************

په تصميم اوګډنيت کيـــږي

په نيك خوي ښه صفت کيږي

دمطلوب هدف منـــزل تـــه

رسيدل په وحــــدت کيږي

دښمني به منځ کـــي نه وي

کارپه مينه مروت کيـــږي

دعــــزت ژوند« وفايار»

تل په ننـگ اوغيرت کيږي

توریالي ځاځي

# دافغان ویاړ

دپکتیا دننګیالیوله « جلالــه »*

دوطـن دآزادۍ دیـــوي بلـــیزي

ددښمن دملا تیرمات توټي توټــي شو

چي دفتحو تاریخونه لیکل کیـــږي

ستاله توري صدقه ددیـــن جلالـه *

چي دسرولښکري ماتي شوي پکتیــاکي

آفرین دي په عظمـــــــت اوتدبرشه

شرنګ دتوري دي خپورشوي په دنیا کي

تاچي پل دمیړنیو په قدم کیـــښود

په تاریخ کي به دلمرپـه شان ځلیــږي

دافغـــان دویاړجلال یې اي جلاله *

تول ولس دي په نامه بانـــدي نازیږي

ملامي کړوپه پښتوشل روغتون کي پروت یم

داخه ژوندي چي په ماباندي تیریـــــږي

کاش ! دخوست په سروتکروکي واي مـــاتي

نه چي دلته له ډیرغم ځني فلجـــــیزي

# دخوست فتحه

په خوست باندي دفتحي چه کوم لمرختلي دي
جهان ته دادامن نیك خبرختلي دي
دسیمي فتحه نه ده بلکه ټول افغانستان ته
کوکب دآزادۍ دي سراسرختلي دي
دخوست له سپیرودښتونه دعطروبوي رادرومي
قدم دمجاهد پري بختورختلي دي
پیغام یي ټول جهان ته دمظلومودبري شو
دعدل لوي امام چه په منبرختلي دي
دظلم اوبیداد قافلي ټولي لوټ اومارشوي
زړګي دکمونستوپه مجمرختلي دي
دي خاوري بیاتازه کړل داسلام ماضي دورونه
دحق دمجاهد چه پري لښکرختلي دي
شیطان که شوزړه چاودي دخندق بدرغزاکي
زمونږ په معرکه کي درپه درختلي دي
چه میاشت دروژي ودریده دزیري په درشل کي
خوښي کړي خوشالي کړي چه اخترختلي دي
جهانه داسلام وربلندي وناره وویاړه!
داستوري چه دفتحي اوظفرختلي دي
غوټۍ دآرزوګانوهمدااوس په سپړیدودي
کاروان دامید ونو په خیبرختلي دي
له وږخځه ترزوړپوري افغان راپاڅیدلي
ناري دتکبیرودي شوراوشرختلي دي

احساس دي اوجذبه ده داصيل فكرملگرو
په زړه كي مي دميني يوشررختلى دى
له مرگه بي پرواﺩي مجاهد دخداي په لاركي
دفتحي په مورچل چه زړورختلي دي
داسره سره بيرغونه به راښكته كړي كه خداي كا
چه توغ يي شين رپاند په اشنغرختلى دى
په لاره داسلام كي چه ايثارلره وردانگي
هغه دخداي په وړاندي مخورختلي دي
دخوست دغه بري موږنيك شاگوم گڼلي ځكه
چه فتحي دكابل لره يي ورختلي دي
تړون دوارسامات شودكمون مرگ دي راعلي
په هركونج ددنياكي يي وزرختلي دي
حلقوم يي عفاريت دشرق اوغرب رالړزولي
آوازچه تري دالله اكبرختلي دي
قصاص دپوليگان دكشتارونونه دي څه دي ؟
له نس دملحدانو چه خنجرختلي دي
دنوح بيړۍ ته وخيژه رښتياكه مسلمان يي
دحق دپلويانوسمندرختلي دي

اعجازنه دي نوځه دي لړدزړه په سترگوگوره
اقبال دمجاهد په بحراوبرختلي دي
بهاردآزادۍ دي آبشارونه دي بهيږي
نسيم هم پري دپاسه معطرختلي دي

لاله دي ټوکيدلي په فارم باغ اوعليزي کي
په لکه، مزغوړو کي صنوبرختلي دي
کوکرك اوپه سيګۍاويعقوبي کي دي جشنونه
په باك کي ددښمنوبال اوپرختلي دي
عجيبه فضاښکاري سپيني واوري سره ګلونه
زيړي لمرلمبې غرونه شغله ورختلي دي
غرزاده دتوپونوځمکه ټوله لاندي خوځي
دپاك خداي قهرمان چه په سنګرختلي دي
غوغايي په هرلورشوه چه دفتحي غږيي واوريد
نجيب زبون ويلي. اواوترختلي دي
حيران يمه داسوبه چه په څه شاني تعبيرکړم
دالمردي دبريوکه قمرختلي دي
جهادته چه روان وي ولسونه ورپسي وي
معراج دنيکمرغي، ته دارهبرختلي دي

دخداي شکراداء کړيً چه توفيق يي راته زاکړ
جهادموپه زړه پوري باثمرختلي دي
آزادافغانستان مي اي غيرته خوب کي وليد
تعبيريي هرمؤمن ته معتبرختلي دي

دافغانستان قهرمانو او سرسندونکو مجاهدینو هم دکمو نستي عمالو لپاره ددغه ښار داهمیت ددرلو دلو په درك كو لو سره آن له هما غو لو مړیو شپو ورڅوڅخه دغه ښار تر خپلو پو لادي گوزارونو لاندي وساته اوددي موقع یې ورنه کړه چي خپلي باطلي ریښي او نیلي لاپسي و ځغلوي او په دي تو گه دکمو نست رژیم دبقالپاره مثمر واقع شي ، مجاهدینو په دوامداره توگه په ښار کي پو ځي لښکر کوټ او نظامي تاسیسات تر محاصري لاندي وساتل او دکمو نستانو دزیات پر مختگ مخه یې په غوخه توگه بنده کړه خو په تیرو څلورو ، پنځو کلو نو کي ددغه لښکر کو ټ دمحاصري کړيړلاپسي تنکه او ټو لي خمکنۍلاري گودري وړباندي و تړل شوي چي له نیکه مرغه دمجاهدینودغه تاکتیك دکمونست رژیم لپار ه زیاتي ستو نزي او مشکلات پیداکړل .

اوس چي دمجاهدینو دهماهنگو عملیاتو په نتیجه کي خوست له کمو نستي عمالو څخه آزاد شوي او په بشپړتو گه دمجاهدینو په کنترول کي دي ، نو دمجاهدینو دغه بي مثاله بریالیتوب دخپل قهر مان او مجاهد ملت لپاره نیك فال بو لو او په دي توگه هیله لرو لکه څنکه چي دلوي خداي (ج) په مرسته د ۱۳۷۰ هـ ش کال په رابره کیدو سره زموږ داتلو مجاهدینو ستره فتحه په نصیب شوه دغه شان به په همدي کال کي

# بیامومبارك شه

سید محمودرسالي

بیامومبارك شه بله فتحه دخوست سبـــار وروڼو

ډیرشوپه تاریخ کښي خدایزومونږته افتخارورونو

ورکړغلیمانوته مضبـوط کذارپـــــه سرتاســـو

مات دغلیمانوکړوپـــوره قـــوي لسبـکرتاسو

نوربه تسلیمیزي حق ته ، حق آخرغالبـــــه دي

دومره لوي قوت چه کړودخـوست درپـه درتاسو

ځارمودایمان شم مـــجاهـــدودرنه ځـــاروروڼو

ډیرشوپه تاریخ کښي خدایرومونږته افتخارورونو

میاشت درمضان نیته یوولـــــس دوري وروڼو

ډیره بختوره ورځ مؤمـــــن ته دبري ورونـــو

شولي چه ځلانده مجــــاهد وته وحدت شغلي

کال ؤیوزردري سوه اویاهجري شمســـــي وروڼو

ودریدوبیرغ داسلام بیا په خپل دیاروروڼـــو

ډیرشوپه تاریخ کښي خدایزومونږ ته افتخارورونو

مونږدزړه له کومي تبریکي وایوغازیانـــــوته
خپلومجاهد وپوهـــــوواړورهبـــرانوتـــه
ټول مؤمنې اولس ته په باربارچه په هرځاي کښي وي
هم په جنتونوکښي استوکنوشهیــــــدانوته
دي په شکرانه کښي خداي نه سرزمونږه جاروړونو
ویرشوپه تاریخ کښي خدایزومونږته افتخاروړونو
دازمونږه فتــــح داوحــــدت دابرکــــت وروړنو
خداي به داسلام جوړپه وطن کړي حکومت وروړنو
ځارشم دسنکرزمروقــــربان شم آفـــرین دي وي
ټول جهان حیران ستاسوپه توره په جـرأت وروړنو
سترسترطاقتونه تاسـوتس نس کړل هـــرواروړونو
ویرشوپه تاریخ کښي مونږته خدایزوافتخاروړونو
حق مبارزه ده حقي فتحي حق ظـــــفرستاسو
ټول ملت په ننکه کښي ولاړدي برابــــــرستاسو
ټول افغانستان ستاسوپه لاس کښي یوکابل پاتي
زربه پلاس درشي هغه هم دي په نظرســـــتاسو
تاسودالله یئي الله ستاسومددکـــــاروړونو
بیامومبارك شه بله فتح دخوست سـبـــاروړونو
ځارشم حقاني چه په غلیم شولئي لاس بروړونو
یئي لکه خالد دپاك اسلام ددین عســــکروړونو

خداي موبريالي لره وفاق کښي په دعــــازمونږ

فخرزيات په تاسوکړي ليسه صديق اکبـــرورونو

شـــي دی رسالي مومن صديق نه ځارزرواروورونو

بياموبارك شه بلــــه فتـحه دخوست ښاروورونو

# مبارك مسلمانانوته شي

سيد محمد عثمان انديښمن

فتح دخوست دي مبارك مسلمـــــــانانوته شي

ټول مجاهد ومهاجـــــــــــــــر ومؤمنانوته شي

دوي داسلام دننګـــــياليوزورليـــــدلي نه ؤ

دوي لاډپلك كذارپه سربانـــــدي خـــوړلي نه ؤ

دغسي حال لكه چه وي ليـدپري راغـــلي نه ؤ

اوس دي راټول دمړوسرونواوزخمـــــيانوته شي

فتح دخوســـت دي مـــبارك مسلـمانانوتـه شي

سره ددغومره قدرت پكښي ناكـــــام پاتـــي شو

ځوك ليوني شوځوك له ډيرغمه سرسام پاتي شو

ګوته په غاښ دي ننكيالـــيوته تمام پاتـــي شو

لاړدي په چغواوژراخــــــپل بادارانـــــوته شي

فتح دخوست دي مبارك مسلـــمانانـــوته شي

توپ طیاروټانك ماشیندارو پرې هیڅ کارونکړو

هرڅه ئې بندشو مجاهد وباندې ئې وارونـــکړو

مخ په شالاړه دزخمیانو مړویې شمارونـــکړو

پاتې توروداغ به دتاریخ دې ملـحدانـــوته شي

فتح دخوست دې مبارك مسلـمانانوتـــه شي

له مسلمان سره دخداې مرسته نصـرت وګوري

دښمن ئې خړې سترګې ناست دې خجالت وګوري

په داخلورومذهبویې ملامت وګـــــــوري

دتیښتې لاره که پیدااوس پرچمـــیانوته شي

فتح دخوست دې مبارك مسلمانانـــــوته شي

ښه په میړانې ددښمـــن مــــقابله وکـــړله

الله اکبرناري سره یې پرې حـــمله وکــــړله

دآزادۍ یې ځان سره دافیصـــله وکـــــړله

صدآفرین دې مجاهد واوغازیانـــــوته شي

فتح دخوست دې مبارك مسلمانـــانوته شي

څوك یې تسلیم شو څوك یې مړه شوڅوك زخمیان پراته دي

دخجالت چپرکټونوکښـې حیران پـــراته دي

دخپل خپلوانواقربـاؤپه ارمـــان پــراتـــه دي

دځمکې څله دي يوځل بیرتـــه خائـنانوته شي

فتح دخوست دې مبارك مسلمانـــانوتـــه شي

داسي به نورولايتونه آزاديږي پـه خـير

دپرچميانوتغرټول دي اوټوليږي پـه خير

هرولايت کښي اسلامي بيرغ ودريږي پـه خير

زما شعرونه نـظرانه دي شهيدانوته شـي

فتح دخوست دي مبارک مسلمانانوته شي

نه بي نجيب نه بي ياران کابل کښي نورپاتي شي

ترمرګه پوري به دوي ټولوته پيغورپاتي شي

په هرتندي به ورته ګوره داداغ تورپاتي شـي

ويي«انديښمن» ژوند به سورااوردي ظالمانوته شي

فتح دخوست دي مبارک مسلمانانوته شي

## خوست ته

گل ملاهمکار

ددنګودنګوجکوغرونو خوسته

دميړنيودبريدونوخوسته

په تاکښي ماتي دښمن وخوړله

په تابه وياړودوياړونوخوسته

په تادخاوري ځامن خاوري شوي
دميزائـــيلودبونوخـــوسته

ستااولاد ونوسبقونه ورکـــړل
دمجاهد وملـــتونوخوســـته

ته يې دسرپه بـدل وګـــټلـي
يې ګټل شوي په سرونو خوسته

دغره په سريې بيرغ ورپـــيده
دپکتيا په لوړوغرونو خوسـته

ستا دښمنان دغم ويرونه کـوي
شوي دغليم دفريادونو خوسته

په آزادۍ دي اتنونه کـــوم
پکارچه ونيسم جشنونه خوسته

که دښمن وکړي بارانونه دسکـد
برداشت کوويې په ځانونو خوسته

خوستا ساتنه به په نره کـــوم
ته يې ټاتوبې دپلرونو خوسته

# دخوست فتحه موتبریك شه

ملاأسد الله حنیفي

اي مومنوافغانانو دخوست فتـــحه موتـــبریك شه

دسنگرپهلوانانودخوست فتحـــه موتبـــریك شــه

کره مویبا یوځل ثابته چي دښمن مرگ ته نـږدي دي

اي دخدای ددین بچیانو دخوست فتحه موتـــبریك شه

دغه ستاسوشهادت وچي دښمن پرمـــخي پریـــوت

اي دحق په لیاررروانو دخوست فتحه موتبـــریك شه

لړزولي موالحاددي په کـــابل اوکـــرېملیــــن کي

داحمدبازماندگانودخــوست فــتحه موتـــبریك شه

دکمون غرورمومات کرپه مسکـوکي ورتـــه وروڼو

داسلام دکورزمریانو دخوست فتحه موتبـــریك شه

یوځل بیا موورتـــه ورانه دالحاد سره بتخـــانه کړه

اي دوخت بت شکنانو دخوست فتحه موتـــبریك شه

زره یي ووت له گوگله تینگ به نه شي په کـابل کي

دپکتیادغروبازانودخوست فتحه موتــــبریك شه .

پـــــیلامه دآزادۍ ده څه وړه خبـــره نـــده

سربېرواتلانو دخوست فتحه موتـــبریك شــــه

په يوغزموکړله ماته دکمـــون دديوکــــبکره

ديوه چمن ګلانو دخوست فتـــحه موتبــــريک شه

خداي موږينه کړه قــبوله پښه خپل درکي زرتــرزره

ددي فتحي شهيدانو دخوست فتحه موتـــبريک شه

دقلم څوکه نڅيزي چي دالــــويه فتـــحه ليکي

دپکتياقومانداناتودخوست فتــــحه موتبريک شه

دپکتياپه دنګوغـــروکي بلبلان ســــندري بولي

درته وايي اي ځوانانو دخوست فتحه موتبريک شه

هرمومن خوښ اوخندېږي دغه ستاسوپه دافتـــحه

حنيفي وايي غازيانو دخوست فتحه موتبـريک شه

## دخوست فتحه

مولوي ولاجان « وثيق»

فتحه دخوست دي مـــــبارکه شه افـــغانه

اي باتـــــوره ددي عـــــصرقهــــرمانه

تادظلم اوروحشــــــت ماتي کــــري رنګي

درس دي ورکړوخلق پرچـــم ته پهـــــلوانه

باداران يي په ماسکوکښي وارخطـــا شول

آفريــــــن دي په دي تـــــوره اوميـــرانه

سمه غردخوست همه واړه خوشحال وو
چه زاغان يې شول بهر له گلستانه
تراني دخوښۍ وائي اوريدي شي
کاني بوټي وني غني له خپل ځانه
مجاهد په خوست کسي گرځي خوشحالي کړي
زړگي وچاوددنجيب له ويرخپگانه
چه دخوست دآزادۍ خبري بيا کړي
نه شرميږي دابي شرمه له هيچانه
خوست لاځه چه ټينگ به نه شي په کابل کښي
قهريدلي منجاهد له هري خوانه
دابه ښه وي چي په خپله ځان تسليم کړي
ورته نشته بله لارله دي آسانه
اوکه نه وي سربه اوخوري نن سبا کښي
داخبرورته وثيق کړوله پښخوانه

# به افتخار فتح خوست

( محمد یاسین نیازي )

بدست پرتوانت اي مجاهدکفربشکستي
به ایمان وصفاومهرواخوت عهدهابستي
نمودي فتح شهرخوست رابافکروهمدستي
میان لشکرطاغوتیان چندین نفس جستي
توچون شیرژیاني ازصف دشمن بگسستي
شکستي دژاستبدادوطاغوت وزبردستي
بنازم مشت پولادین توهمسنگرم اکنون
ببالم برق شمشیرتراتاج سرم اکنون
بخون گرم خود ایثارکردي سرورم اکنون
فکندي درجهان ازشوروغوغامینگرم اکنون
تواي پورپرازابهت تونورمنبرم اکنون
زپیکاروجهادت سخت لذت میبرم اکنون
بنازم قدرت وشمشیروفتحت اي رزمنده
که روح وچشم توباقوت ایمان آگنده
چنان ضربت زدي باوحدت وایمان تابنده
که چون بودصاعقه ، بردشمن ناپاک کوبنده

انشاءالله دلوي خداي (ج) په مرسته په ټول هيوادکي يو ځل بيااسلامي بيرغ ورپيږي او دافغانستان دمسلمان قهرمان او مجاهد ملت په خوښه به اسلامي نظام ټينګ شي . انشاءالله

و من الله التو فيق

الحاج خير نمل محمدعارف غروال

دتاريخ ټولني رئيس

توساختي ظاهراسلاف ماباردیگـــرزنده

مبارك برتورواهل وطن ایـــن رسم زیبنده

بیا اي مردحقجوي مسلمان افتـــخارمن

بیااي گلبن امید من ، اي شهـــسوارمن

فزودي دررگ ودرتاروپـودم اعتـــبارمن

توزینت .آفریدي ازفـــتوحت روزگـــارمن

که باشد رهکشـــاومایهء امیـــد وارمن

بمن دادي توقـدرت دردل نا استـــوارمن

ترانازم که افکندي زپاآن دشمـــن مکار

ترانازم به میدان معارك درصف پیـــکار

اگرازنعره الله اکبرمي کشي یکـــــبار

خوردچون تیرزهرآلودبه قلب دشمن خونخوار

نداردتاب شمشیرترااي قافـــــله سالار

به میدان درهراس افتد زدستت دشمن مردار

هماومهرواخوت سایه افکند دردیـارخوست

گرفته لشکرتوحید بدستش اختیـارخوست

زداید ازخرابي هاي بي دینان غبـــارخوست

بجاي شرك وکفرآرد مسلمان اعتبارخوست

بسازدمرحباهرگوشهء وکنج وکـــنارخوست

گذارد مرهمي برقلب زارداغدارخـــــوست

# فتحت خوست

شعر: خالد حسن الهنداوي

إيه ياخوسبت كيف أ ـدأشعري
وعطاياك بعض فتح وبدر؟
كيف أروي للعالمين قصيدي
وحكاياك بين نظم ونثر؟
قدتحملت من زمان ظلاما
فاغسليه، فذي بشائرفجر
يالخط المجاهدين بفضل
كرمافاض من مني خيرشهر
قدرالله في الصيام المنايا
صاعدات نازلات بامر
فافخري ياجبال طبت هنينا
بمقام من كل قرم مزبر
حان ضرب الاوغاد بايد فارمي
بسهام ، إلي سيوف ، وشمر
اطبقوايااليوث فوق عدانا
وثبواوثبة كزيدوعمرو
رفع الكون رأسه يتحدي
ويباهي بكم بفرحة نصر
ذاك يوم من الزمان فريَد
حيث جيش الالحاد يمني بقهر

وتولوابالثبور، ويل نجيب
كيف يرمي بأرنب تحت نسرا
ورطة الاحمقين ورطة فار
دونه الصقروهريعيابهـرا!!
صوبواياكماة، للحق فوز
وقوي الباطل الزهوق بخسر
ظن أعداؤناالجهاد سيطوي
فـاذابالـجهاد صفحة نشر
اخفق المكروالسياسة لما
غطياالعزم وانضال بستر
فتغني الرصاص لحنا شهيا
كتغاريدبلبل فوق زهر
صبت الناربالمدافع يعلو
بعلاها التكبيرنفحة ذكر
خسي « سكود» والحديد وولي
حيث صخرالايمان ليس كصخر
ليل « خوست »مثل النهارمضي
بنهاركليها محمر
زعردانجم بهجه وسرورا
انتصارفيه انشراح لصدر
فالمطاران خاتمان احيطا
بيدي فارس خبيربكر
قذف الوكرفاستحال رماداً
فبني مسجداً بموضع وكر

لايدوم الفسادوالفسق مهما
ظن أهلوه أن يفوق بعصر
ليس سيان من يصون الاهالي
كالذي يفضح الحريم بجهر
ليس سيان صائم ومصل
كالذي يستحل فحشا بخمر
يالهيب الجهاد أحرق عدانا
وارمهم للوحوش في كل بر
لاتسلني عن الجماجم عدأ
فهي كالرمل كالحصي دون حصر
لاتسلني عن الاساري فواد
غص حملا بهم باهون جر

وجموع قدسلمت برضاها
فهي تهوي المجاهدين بسر
قذفوامن عل عتادأوزادأ
ليزول الاذي ببطن وظهر
فاذابالرياح درت الينا
مدد الظالمين أعظم در
إنه القادرالعزيزبجود
بكرم الاوليا باكرم خير
منهم في القتال عرب اسود
امطرواالمجرمين وابل جمر

فطروهم حلوالقنابل ليلا

سحروهم ماقبل طلعة فجر

ورووامن دمائهم ارض عز

فبكتهم من كل حرمكر

إن حبل الجهاد في الدين حبل

لايري الفرق بين قطروقطر

فانهضوانجدة فتلك سبيل

ليس فيها لقادرأي عذر

وابذلواالعون من طعام وطب

وسلاح من كل معط وكبحر

فانتصارالافغان نصرأكيد

حمي المسلمين في كل شبر

فتحت خوست فالسماء بهاء

وعلي الارض كل بيض وخضر

مركزالخبث عنك دافع روس

واستماتواكيلاً تذلي بأسر

ونجيب مولودك الموغدى يعوى

ويظن النباح رامى ذغر

لورأيت الكباركيف تخازوا

رافعين الايدي بوقف وسير

لشكرت الوهاب شكرأجزيلاً

وحمدت المولي بقلب وفكر

خوست في فتحك الرجابفتح

كابل فيه تقتدي وتعري

فاحفظ الله كل حام صبور
ذاديبغي الاسلام سحقا لكفر
وارفع الله للشهيد مقاما
وانله الفردوس خيرمقر
واجعل النصرفوقا يتلالا
وهب اقوم ما وهبت ببدر

---


مؤخذونه اومعلوماتي منابع :

۱- دافغانستان جغرافيايي قاموس لومړي اودوهم ټوك د ۱۳٤۰ كال او ۱۳٤۲ كال چاپ .

۲- منبع الجهاد مجله ددوهم كال لسمه گڼه د ۱۳۷۰ هـ ش كال دحمل مياشت .

۳- دمحاذ جريده ددريمې نشراتي دوري ۷۲ مه گڼه دچهارشنبي ورځ د ۱۳۷۰ هـ ش كال دوري ۲۱ مه .

٤- خانجان وفاياردعوت اوارشاد دوزارت درادیوتلویزیون دهنر اوادبياتومسلكي غړي .

۵- قوماندان گلاب خان دمته سنگرپه شوري كي دملي اسلامي محاذ دمجاهدينو قوماندان.

٦- مولوي پيرمحمد رحماني دخوست په مرکزي شوري کي داتحاد اسلامي مجاهدينو قوماندان .

٧- مولوي جميل شاه دخوست په مرکزي شوري کي دمولوي پيرمحمد مرستيال .

٨- قو ماندان محمد ايوب دغلنګ په شوري کي دنجات دملي جبهي دمجاهدينو قوماندان .

٩- قوماندان ميرزاجان دغلنګ په شوري کي داسلامي جمعيت دمجاهدينو قوماندان .

١٠- قوماندان خان محمد دغلنګ په شوري کي داسلامي اتحاد دمجاهدينو قوماندان .

١١- جګړن عنبرګل داسلامي اتحاد دځاځيودوحدت اسلامي دجبهي دقوماندان مرستيال .

١٢- قوماندان ميربداددسروبي په شوري کي دملي اسلامي محاذ دمجاهدينو قوماندان .

١٣- ددعوت اوارشاد دوزارت دخبررساني‌درياست پرله پسي خبري راپوررونه .

## یادونه :

موږ تصمیم درلود چې د خوست د فتحې په دې رساله کښې به د ټولو هغو قوماندانانو عکسونه او هغه چې د خوست او ځای ځای میدان د فتحې په ویاړلو او بریالیو عملیاتو کښې یې برخه درلوده، خو د امکاناتو د نشتوالي له امله به دلته لوستونکي زموږ عذر ومني او دا به زموږ سستي او بې علاقګي ونه بولي البته په راتلونکي وخت کښې به کوښښ وکړو چې خپله دغه نیمګړتیا پوره کړو.

(په درنښت)



د پکتیا نامتو او پیاوړی قوماندان الحاج جلال الدین حقاني



د پکتیا مشهور قوماندان الحاج خلیفه عبدالواحد نقشبندی

## خوست داسلامي بيرغ تر سيوري لاندې

مخکې تر دې چې دخوست دفتحې په برياليو او ميړنيو عملياتو وغزيږو بهتره به داوي چې دخوست جغرافيوي موږ قعيت وپيژنو او په دې تو گه ددغې لويې ولسوالۍ په باب پوره معلو مات تر لاسه کړو چې په دې تو گه وړاندې کيږي :

خوست دپکتياولايت په جنوب ختيځ لورې پروت دې چې دختيځ طول البلد په (۶۹) درجو(۳۹) دقيقو او (۵۸) ثانيو او دشمالي عرض البلد په (۳۳) درجو (۵) دقيقواو(۲۴ ) ثانيو کې موقعيت لري ، دهيواد له پايتخت کابل څخه (۲۳۸) کيلو متره او دپکتيا ولايت له مرکز گرديز څخه (۱۱۶) کيلو متره فاصله لري . له جنوب ختيځ او شمال ختيځ لورې دپاکستان له سرحد سره پيو ست دي ، شمال او شمال لو يديځ پلوته ئې مقبل ، منگل او ځدراڼ او جنوب لويديځ خواته يې هم ځدراڼ پراته دي .



قوماندان الحاج شیرخان کوچی



قوماندان حاجی یعقوب خان



قوماندان رهبری کوچی



قوماندان ملا عالم جان



قوماندان حاجی خیر محمد



قوماندان سید خان رسید کی،



قوماندان حاجی علاقدار



قوماندان عبدالولی

## یادونه :

درانه لوستونکی به د رسالي په دې برخه کښې هغه الوتکې ، ټانکونه او پوځي سازوسامان او همدارنګه هغه عسکراو ملیشه یان وګوري چې دخوست د فتحې په بریالیو عملیاتوکښې د قهرمانو مجاهدینو لاس ته ورغلي دي .

## دخو ست ستراتيژيکي اهميت:

خوست دافغانستان له هغو ښارونو څخه دي چي دهيواد لپاره زښت زيات ستراتيژيکي اهميت لري ، خوست دهيواد دسرحدي ښار په تو گه دتاريخ په اوږدو کي دبهر نيو يرغلگروپه وړاندي ديو پو لادي سنگر په تو گه پاتي شوي او له دي ځايه دير غلگروپر پو ځي تاسيساتو او مر کزو نو مرگو ني گوزارونه شوي اودهيواد ددفاع په سنگر کي يي خپل تاريخي رسالت سر ته رسولي دي او اوس دمجاهدينو لپاره له دي امله زيات ستراتيژيکي اهميت لري چي مجاهدين کولاي شي له دي ځايه په ډيره اساني دمزدور رژيم تر ساحي لاندي پر پو ځي تاسيساتو او مر کزو نو باند ي دجهادي گرو پو نو عمليات او گوزارو نه رهبري کري او په عاجل ډول دمجاهدينو داکمال او سمبالښت په غرض رسيدگي وکړي .

## دخوست دلويې ولسوالۍ اداري تشکيلات :-

١- دخوست لويه ولسوالي چي مر کزيي په خوست کي دي.

٢- دتڼيو دو همه درجه ولسوالي چي مرکزيي په در گي کي دي ، پر دغه و لسوالي پوري دنادر شاه کوټ دو همه درجه علاقداري اود گر بزو دو همه درجه علاقداري چي مرکزيي شيخ اميردي ترلي دي .

۳- دموسیٰ خیلو منګلو دریمه درجه و لسوالي چي مرکزي زلمي کوټ دي او دقلندر دو همه درجه علاقداري ورپوري تړلي ده .

٤- دځاځي میدان څلورمه درجه و لسوالي چي مر کزيي پخپله ځاځي میدان دي او دباك دوهمه درجه علاقداري ورپوري تړلي ده .

٥- دصبریو لومړۍ درجه علاقداري چي مرکزيي په یعقوبیو کي دي او مستقیماً له خوست څخه اداره کیږي .

٦- دتر یزایو دوهمه درجه علاقداري چي مر کزيي په علي‌شیرو کي دي ، دغه علاقداري هم دخوست په لویه ولسوالي پوري تړلي ده .

٧- داسمعیل خیلو او مندوزیو دوهمه درجه علاقداري چي دغه علاقداري هم دخوست له خواداره کیږي .

## دخوست کرنه او پیداوار:

دخوست خاوره حاصل خیزه او معتدله آب و هوالري که څه هم په اوړي کي يي هواتوده ده، خو پر له پسي بارانو نه ددي سیمي دتودو خي درجه راکموي په خوست کي غنم،جوار، وریجي ، اوربشي ، کچالو، شلغم ، رومي بادنجان او نور ډول ډول سبزیجات کرل کیږي ، میوي يي تو تان ، زردآلو، الوچي ،

لیمو ،نارنج ، متهه ، کیلي ، چار مغز، مني، انګور، انار ، انځر ، شفتالو ، بادرنګ ، خټکي ، هندواڼي اونوري دي ، او په غرو- نوکي یې ګورګوري ، شنيې، غرني انار ، پتوي ، پرګي او خو- لني زیات پیداکیږي .

## په خوست کي دملحد رژیم نظامي قو تو نه:-

۱- دخوست پنځه ویشتمه ۲۵ فرقه .

۲- دخوست سرحدي لوا.

۳- دخوست ٦٦٦ پلي غونډ .

٤- دخوست ۱۹ پلي غو نډ .

٥- دخوست ٦ تو پچي غونډ .

٦- دټانك كنډك .

۸- دكشف كنډك .

۸- دمخابري كنډك .

۹- دانجنيري كنډك .

۱۰- دكو ماندو كنډك .

۱۱- دجګ خولو تو پو نو كنډك .

۱۲- دو سلو دتر میمو لو كنډك ( وركشاپ).

۱۳- دخاد كنډك .

۱٤- دقو مي مليشو بيلابيل غونډو نه .

۱۵- دپو لیسو امنیتي کنډك .

۱٦- دوه هوایي ډګرونه .

۱۷- دهوایي کشف ( رادار ) دستګاه .

۱۸- له کابل او دهیواد له خینو نوروسیمو څخه دتازه دمو مر ستندویو قو تو نو جزوو تامو نه .

## په خوست کي جهادي قوتو نه:

دپکتیاولایت دخوست په لویه ولسوالي کي هم لکه دافغانستان دنورو سیمو په شان دټولو جهادي تنظیمو نو منظم قو تو نه مو جوددي او په ټو لو جهادي عملیاتو کي دیو بل تر څنګ يي خپلو فعالیتو نو ته دوام ورکړي دي . که څه هم ښايي دځینو جهادي تنظیمو نو دمجاهدینو شمیر دځینو نورو جهادي تنظیمو نو دشمیر په انډول څه ناڅه کم وي ، خودادي معني نه لري چي ګوندي په جهادي هلو ځلو کي دي ددوي په مو ثر يت ستر ګي پټي شي ، نو ددي لپاره چي په خوست کي دجهادي قو- تو نو په باب پوره معلو مات تر لاسه شوي وي لازمه ده پر هغو جهادي شوراګانو رڼاواچوله شي چي دخوست په شاو خواکي يي په دوامداره تو ګه جهادي فعالیتو نه جاري ساتلي دي.

دخوست په لویه ولسوالي کي اته (۸) محلي جهادي شورا ګاني او په ځانګړي میدان کي یوه محلي شورا مو جو ده ده چي

دافغانستان اسلامي دولت

دافغانستان اسلامي مؤقت حکومت

ددعوت اوارشاد وزارت

دتاريخ تولني رياست

# دخوست فتح

الحاج ښيرمل محمد عارف «غروال»

دکتاب مشخصات :

نــــــوم : دخوست فتحه

لیکــوال : الحاج خیرمل محمد عارف « غروال»

خپرونکي : دافغانستان دتاریخ ټولنه

دچاپ شمیر: دوه زره ټوکه

دچاپ کال : ۱۳۷۰ هـ ش ـ جوزا

دچاپ ځاي : دښووني او روزني دوزارت مطبعه

کمپیوټرکمپوزر: میرویس « خاورین »

اهداء :

دخوست اودگران افغانستان ټولوهغو شهيدانو
ته چي ددين اووطن دخدمت په لارکي يي خپل
سرونه قربان کړل.